خپروونکی: بشارت خپرندویه ټولنه

د ښوونیزو کتابونو پرلیسي لړ: ۷۰

# د عریضو او لیکونو

## لارښود

اداري برخه

استعلامونه

وړاندیزونه

لیکونه

صادره

او مکتوبونه



خپرونکې: بشارت خپرندویه ټولنه
د ښوونیزو کتابونو پرلپسې لړ: ۷۰

# د عریضو او لیکونو لارښود

لرونکی دی

اداري برخه

استعلامونه

وړاندېزونه

لیکنو

صادره

او مکتوبونه

لیکوال: حفیظ الله؛ لشکري؛
ژباړه: محمد اکبر؛ نیازي؛
برېښنایي کوونکي: عزت الله سلطانزی

# د کتاب پیژندنه

| د کتاب نوم | د عریضو او لیکونو لارښود |
|---|---|
| لیکوال | حفیظ الله (لشکري) |
| ژباړه | محمد اکبر (نیازي) |
| برېښنايي کوونکی | عزت الله سلطانزی |
| پرلیکه کوونکی | عزت الله سلطانزی 0093706912702 |
| لمړي چاپ کال | ۱۳۹۵ ل |
| کمپوز | خپله ژباړن |
| ډیزاین | حفیظ الله (لشکري) |
| خپرندوي | بشارت خپرندویه ټولنه پل باغ عمومی یوسفی مارکیټ دریم پوړ کابل افغانستان |

دا کتاب دباور کتابتون څخه ښکته شوی

https://Bawar.Net

دنور کتابونو لپاره د باور کتابتون له ویبپاڼې څخه لیدنه وکړۍ



# دکتاب د مطالبو لړلیک

## لومړۍ خبرکې د غوښتنلیکونو برخه

**دویم څپرکی عمومي برخه**



**دریم څپرکی د رقعو برخه**



**څلورم څپرکی اداري برخه( مکتوب، استعلام، وړاندیزونه)**

**پنځم خپرکی لیکونه**

## فرهنګي غلوته خبرداری

داسې خلک دې آګاه وي که چېرې په دنیا کې، هغوی د نوروهغه مال په ناحقه چې دده حق پکې نه وي په بېلابېلو بهانویې وخوري سبا به دخدای سبحانه وتعالی پرو ړاندې څه ځواب ووايي؟ نو ای وروره که حاجي يې، که دقرآن شریف قاري اوکه امي يې خبردار اوسه چه سبا به دمحشر پر ورځ ددې سرقتونو ځواب ستا پرغاړه وي اود هغه چا لاس چې تايې مال په ناحقه تلف کړی، ستا په ګريوان کې وي نو هغه مهال به د ځلورويشت زره عالم او دخدای په وړاند ې څه ځواب ووايې؟

نو ګرانه دوسته پر دې خبره بسنه وکړه چه (وَاللّٰهُ خَيرُ الرّازِقِينَ) الله غوره روز ي ورکوونکی دی لدېنه وروسته دخپل ځان او خپلې کورنی لپاره دحلالې روزی په لټه کې اوسه نه دحرامې روزی به لټه کې.

ستاسې ورور حفیظ الله "لشکري"

**لومړی خپرګی د غوښتنلیکونو برخه**

## بدل اعاشه معاش اخیستل

شاهد الله دحفیظ الله دزوی غوښتنلیک

دثانوي مدارسو او دارالحفاظو نو ریاست محترم مقام ته

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

قدرمنه زه چي پېژندنه مې پورته یاده شوې دمعهد الازهر داتم ټولګي زده کوونکی یم دغریبی او اړتیاوله مخې غواړم دبدل اعاشې له معاش څخه چې دشاګردانو لپاره به پام کې نیول شوی ماته حواله کړی شي، نو ستاسې له درانه مقام څخه هیله ده چې په اړوند مرجع زما دعرض پاڼې په هکله دامر به فرمایلو لطف وکړی تر څو دهغه معاش په ترلاسه کولو دتګ راتګ دکرایې مصرف پرې اداکړم، الله دې اجردرکړي.

په درناوي



## د محرمیت د وثیقې جوړول

زینب د غلام سخي لور د غزني ولایت
د جاغوري ولسوالی اوسېدونکې غوښتنلیک

د غزني ولایت د وثایقو د محکمې محترم ریاست ته!

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

قدرمنه! غواړم چې د حج د مبارکې فریضې ادا کولو لپاره بیت الله شریف ته لاړه شم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله لرم چې د وثیقه خط په جوړولو کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.او دا به مو مهرباني وي.

په درناوي

لاسلیک یا (ګوته)

نېټه: ۱/ ۳/ ۱۳۹۵



## د خپرونو جواز اخیستل

زه (          ) د (          ) زوی/لور
د (          ) ولایت (          ) ولسوالی اوسېدونکی غوښتنلیک

د افغانستان اسلامي جمهوریت د پوهنې وزارت محترم مقام ته!
السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

قدرمنه! زه د بشارت خپرندویه ټولنې مالک یم نوموړې اداره، چې په پل باغ عمومي کې موقیعت لري د ګرانو هېوادوالو او مشتریانو په غوښتنه غواړم چې د قانون کتابونه په غوره کیفیت او رنګه ډول چاپ کړم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.او د کتابونوخپرولو زمینه راته برابره کړئ.

په درنښت

محمود لاسلیک

## د پولیسو په اکاډمۍ کې شاملېدل

د (　　) د (　　) زوی/لور

د (　　) ولایت (　　) ولسوالی اوسیدونکي غوښتنلیک

د کورنیو چارو وزارت محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

قدرمنه! دا چې په کال ۱۳۹۳ کې له دولسم ټولګي څخه فارغ شوی یم غواړم چې د پولیسو په اکاډمۍ کې شامل شم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کوم چې د پولیسو په اکاډمۍ کې زما د شاملېدو په هکله اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ. ترڅو د اکاډمۍ له فراغت وروسته د هېواد او هیوادوالو لپاره د خدمت جوګه شم.

په درناوي

احمد لاسلیک یا (ګوته)

## په ښوونځي کې په سامع ټول شمولیت

مجیب الله د حفیظ الله زوی د کابل ولایت
د دولسمې ناحیې اوسېدونکي غوښتنلیک

د کابل ښار د پوهنې ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

قدرمنه! دا چې په ګاونډي هېواد ایران کې مې خپلې زده کړې تر لسم ټولګي پورې بشپړې کړې خو له بده مرغه ونه توانېدم چې خپل تحصیلي اسناد له ځان سره راوړم اوس غواړم چې په ( ) لیسه کې په سامع ټول شامل شم هیله ده چې زما په شاملېدو کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ. ترڅو خپلې زده کړې بشپړې کړم.

په درناوي

## په پوهنتون کې شموليت

مجيب الله د حفيظ الله زوی د بلخ ولايت
د مرکز مزارشريف اوسيدونکي غوښتنليک.

د دعوت پوهنتون رياست محترم مقام ته!
السلام عليکم و ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! زه مجيب الله د حفيظ الله زوی چې په کال ۱۳۸۹ کې د محمود طرزي عالي ليسې څخه فارغ شوی يم اوس غواړم چې د دعوت پوهنتون د کانکور په ازموينه کې ګډون وکړم ستاسو له محترم مقام څخه هيله کېږي چې ۱۳۹۰ کال د کانکور په ازموينه کې د ګډون لپاره اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي
مجيب الله لاسليک يا (ګوته)

## د موټر لادره کي

د (        ) زوی/لور (        ) د کابل ولایت
(        ) ناحیې اوسېدونکي غوښتنلیک

د کابل ولایت امنیه قوماندانی محترم مقام ته!

السلام علیکم و ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! په ۱۳۹۱ کال د وري په شپاړسمه نېټه یو کرولا ډوله موټر د(        ) پلیټ او (        ) موډل په درلودلو سره سهار لس بجې د دوغ اباد له سیمې څخه د نامعلومو کسانو له خوا تښتول شوی نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې دیاد موټر په پیداکولو کې اړوندې اداري ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي
لاسلیک یا (ګوته)

## د مېرمنې له لوري د جلا والي لیک

د (        ) د (        ) لور د (        ) ولایت

(        ) ولسوالی اوسېدونکې غوښتنلیک

د حقوقو ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! لس کاله کېږي چې له (        ) د (        ) زوی سره مې واده کړی دی چې نوموړی له پیل څخه تر دې دمه په سمه توګه راسره ښه چلند نه کوي، تل مې وهي او ټکوي ځکه هغه یو ظالم او په نشه یي توکو روږدی شخص دی نور نه غواړم چې ژوند ورسره وکړم ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې له خاوندڅخه د جلاوالي په موخه اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

نېټه ۳/۳/۱۳۹۵

## د سړي له لوري طلاق ورکول

د (      ) د (      ) زوی د (      ) ولایت
(      ) ولسوالی اوسېدونکي غوښتنلیک

د کابل ولایت د حقوقو ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! له (      ) کال څخه مې له (      ) د (      ) لور سره واده کړی چې اوس د یو ماشوم لرونکي یو، له دې کبله چې مېرمن مې راسره سمه ګوزاره نه کوي له ټولو اوامرو څخه مې سرغړونه کوي تل مې خپه کوي اوساري ناروغي لري نو نه غواړم چې له هغې سره نورشریک ژوند ته دوام ورکړم بلکې غواړم چې طلاق ورکړم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې اړوندې اداري ته پدې هکله لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

لاسلیک یا (ګوته)

## د زوجیت خط جوړول

مور (　　　) د (　　　) زوی

او (　　　) د (　　　) لور غوښتنلیک

د (　) ناحیې د وثیقو ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته.

قدرمنه! موږ دواړو په ۱۳۹۲ کال سره واده کړی چې اوسمهال د دوه و زامنو هر یو [ شپاړس کلن (　　　) او څوارلس کلن (　　　) لرونکي یو اوس غواړو چې د زوجیت شرعي وثیقه جوړه کړو نو په دې برخه کې ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې د وثیقې په جوړولو کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړي.

په درناوي

# د نکاح خط اخیستل

۳/۱۳۹۵/نېټه ۳

زه (　　　) د (　　　) زوی او (　　　) د (　　　)

لور د (　　　) ولایت اوسېدونکي غوښتنلیک

د (　) حوزې د وثایقو د ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! موږ دواړو په ۱۳۹۲ کال د غبرګولي په لسمه نېټه له قانوني موانعو پرته د (　　　) مهر په ټاکلو د شاهدانو او جومات ملا امام په شتون دکورنیو او پخپله خوښه سره نکاح تړلې اوس غواړو چې د نکاح خط شرعي وثیقه ترلاسه کړو نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې په دې برخه کې اړوندې اداري ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د محکمې په پرېکړه قناعت خط

زه (      ) د (          ) زوی

د (      ) ولایت (              )

ولسوالی اوسېدونکي غوښتنلیک

د (    ) ولایت (    ) نمبر زون ښارنوالی ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! هغه دوسیه چې د یوې ټرافیکي پېښې له کبله د درېمې حوزې په محکمه کې لرم له (        ) تاریخ څخه زه په یو کال بند باندې محکوم شوم او د محکمې په پرېکړه قناعت لرم ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د تقاعد اخیستلو غوښتنلیک

زه (          ) د (          ) زوی د (          ) وزارت د
(          ) مدیریت برحاله مامور غوښتنلیک

د ۱.۱. جمهوریت د (          ) وزارت لوړ او محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! څلویښت کاله مې ددې وزارت په بېلابېلو ادارو کې دنده ترسره کړې اوس د عمر د زیاتوالي له کبله نشم کولای چې خپلې دندې ته په •سمه توګه دوام ورکړم او د خپل تقاعد غوښتونکی یم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې اړ ...ې ادارې ته پدې هکله لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د وکیل له خوا د کور خرڅول

(          ) د (          ) زوی/لور او وکیل (          ) د (          ) زوی د وکالت خط شمېره (          ) غوښتنلیک

د (     ) ناحیې د محکمې ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د (          ) نمبر وکالت خط او د (          ) ناحیې د محکمې له (          ) تاریخ سره سم غواړم یو کور چې په دولسمه ناحیه کې موقیعت لري د (          ) نمبر شرعي قبالې او ( ۴۰۰ ) متر مربع مساحت اندازې سره چې شرقاً(          ) غرباً (          ) جنوباً (          ) او شمالاً (          ) سره په محترم(          ) د (          ) زوی او د (          ) پرلمسي د (          ) افغانیو په بیې سره په قطعي بیعه خرڅوم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې د شرعي قبالې په جوړولو کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

**په درناوي**

## د وکالت خط قبولي

د (       ) د (       ) زوی/لور د (       ) ولایت او
(       ) ولسوالی اوسېدونکي غوښتنلیک

د (   ) حوزې د وثایقو د محکمې ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د افغانستان اسلامي جمهوریت دلوی سفارت له خوا د (       ) وکالت خط نمبر سره سم د لس جریبه ځمکې چې په پل ګل باغ سیمې پورې اړوند او د محترم (       ) د (       ) د زوی ملکیت دی ما د خپل نفس د وکیل په توګه تاکي او زه پخپله خوښه دا وکالت منم هیله ده چې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## وکیل نیول

زه (　　　) د (　　　) زوی د (　　　) ولایت

د (　　　) ولسوالی اوسېدونکي غوښتنلیک

د دولسمې حوزې د وثیقو د محکمې ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

قدرمنه! د خپلو بوختیاوو له کبله نشم کولای چې ټولو کارونو ته ځان ورسوم غواړم چې د خپلې (　　) نمبر ځمکې چې (　　) شرعي قبالې لري د ۱۳۹۳ / / تاریخ له پیل څخه محترم (　　　) د (　　　) زوی د وکیل په توګه وټاکم او نوموړی به د لاندې صلاحیتونو لرونکی وي...

۱ - پېرل او پلورل

۲ـ د قبالې ورکول

۳ـ د ګټې ترلاسه کول

نو هیله ده چې اړوندې اداري ته لازمه لارښوونه وکړئ.

## د ځمکې خرڅول او شرعي قباله اخیستل

د (          ) د (          ) زوی/لور د

(          ) ولایت (          ) ولسوالی اوسېدونکي غوښتنلیک

د (   ) حوزې د وثایقو د محکمې ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! غواړم یوه نمره مځکه چې په هوایي ډګرکې موقیعت لري د شرعي قبالې په لرلو سره په ۹۰۰ نهه سوه متر مربع چې شرق لور ته یې (          ) غرب لور ته یې(          ) جنوب لور ته یې(          ) او شمال ته یې جامع جومات دی په محترم (          ) د (          ) زوی په اته لکه افغانیو چې څلور لکه یې ورکړل شوي پلورم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې دشرعي قبالې په اخیستلو کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د فرضي حج احکام اخیستل

د (                    ) د (                    ) زوی/لور د (                    )

ولایت (                    ) ولسوالی اوسېدونکي غوښتنلیک

د ا.ا. ج. د حج او اوقافو وزرات محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د هغې مینې او خوښې له مخې چې د اسلام له سپیڅلي دین سره یې لرم غواړم چې له خپلې کورنی سره ( مېرمن، دوه ځامن او دوه لوڼې) بیت الله شریف ته لاړ شم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې په دې برخه کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درنښت

## د لیاقت ازموینه ورکول

زه(            )د(              )زوی/لور د غازي
عبدالله خان اڅکزي لیسې د اتم ټولګي زده کوونکی

د کابل ښار پوهنې ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

قدرمنه! دا چې د ۱۳۹۱ کال په کلنی ازموینو کې مې لوړې نمرې اخستي وې او ۹۵٪ سلنه نمرې مې پوره کړي دي اوس غواړم چې د نهم ټولګي لیاقت ازموینه ورکړم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې اړوندې اداري ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

احمد لاسلیک

## ښوونځي کې په موقت ډول شاملېدل

نېټه: ۱۳۹۵/۱/۳

زه (        ) د (        ) زوی د (        )
ولایت (        ) ولسوالۍ اوسېدونکی.

د کابل ښار تعلیمي ۲ حوزې د پوهنې امریت محترم مقام ته!
السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! څرنګه چې ما له لومړي څخه تر شپږم ټولګي پورې په خصوصي ښوونځي کې زده کړې کړي نو اوس غواړم چې د(        ) لېسې په اووم ټولګي کې په موقت ډول شامل شم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## په شپې لیسه کې شمولیت

د (            ) د (            ) زوی/ لور د (            ) ولایت
(            ) ولسوالی اوسېدونکي غوښتنلیک

د کابل ښار د پوهنې ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه ! د پراخو اقتصادي ستونزو له کبله نشم کولای چې خپلو زده کړو ته دوام ورکړم او د (            ) لیسې له لسم ټولګي څخه منفک شوی یم اوس غواړم چې د شپې لیسې په لسم ټولګي کې شامل شم نو هیله ده چې اړوندې ادارې ته به زما په هکله لازم هدایات وفرمایئ.

په درناوي

## د سویې ازموینه په اړه

د (    ) د (    ) زوی/لور د (    )
ولایت (    ) ولسوالی اوسېدونکي غوښتنلیک.

د کابل ښار پوهنې ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! تردې دمه مې په خصوصي ډول زده کړې کړې دي اوس غواړم چې د (    ) متوسطې ښوونځي پینځم ټولګي ته د سویې ازموینه ورکړم هیله ده چې په دې برخه کې خپلې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## له لوا څخه غونډ ته د سرتېري تبدیلي

د (  ) د (  ) زوی د توپچي (  )

لوا د دویم ټولي سرتېري غوښتنلیک

د ملي دفاع وزارت د (  ) پېژند لوا امریت محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! دمشکلاتو او د مسلکي ستونزو له کبله نښم کولای چې په (  ) کې خپلې دندې ته دوام ورکړم څکه ما په رادار مسلک کې زده کړې دي نو غواړم چې ځان (  ) غونډ ته تبدیل کړم هیله ده چې زما په تبدیلی کې راسره مرسته وکړئ او اړوندې اداري ته لازمه لاربنوونه وکړئ.

په درناوي

## د ځمکې غصب

د (　　) د (　　) زوی د (　　) ولایت
(　　) ولسوالۍ اوسېدونکي غوښتنلیک.

د کابل ولایت د حقوقو ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! اووه بسوې ځمکه چې په (　　) ځای کې موقیعت لري په کال ۱۳۹۱ کې مې له محترم (　　) د (　　) زوی څخه په پینځه لکه افغانۍ اخیستې اوزه پخپله تاجکستان هېواد ته لاړم اوس چې بېرته هېواد ته راګرځېدلی یم نو زما په ځمکې یو شخص (　) د (　　) زوی ودانۍ جوړه کړې پداسې حال کې چې زه ددې ځمکې شرعي سند لرم او مقابل لوری داسې هېڅ کوم سند نلري نو له تاسو څخه هیله کېږي چې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ او ځمکه مې ماته تسلیم کړئ.

په درناوي

## د پیسو اړوند حقوقي دعوا

مدعي: زه (　　) د (　　) زوی/لور

مدعي علیه: زه (　　) د (　　) زوی/لور د (　　)

ولایت (　　) ولسوالۍ اوسېدونکي غوښتنلیک

د کونړ ولایت د حقوقو ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د (　　) کال د غبرګولي میاشتې په (　　)

نېټه مې (　　) د (　　) زوی د (　　) ولایت

اوسېدونکي ته درې زره افغانۍ په پور ورکړې وې او نوموړي

یادونه کړې وه چې یادې پیسې به په درې میاشتو کې بېرته

درکړم خو تر دې دمه یې زما پور رانه کړ هر کله چې خپل پور

ترې غواړم نو بېلابېلې پلمې جوړوي، ستاسو له محترم مقام څخه

غواړم چې زما پوروړې ونیسئ او پیسې مې ترې واخلئ.

په درناوي

## د سوداګرۍ جواز اخیستل

د (          ) د (          ) زوی د (          ) ولایت

(          ) ولسوالی اوسېدونکي غوښتنلیک

د افغانستان اسلامي جمهوریت د سوداګرۍ وزارت محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! زه د وړیو، کولمو او پوستکو تجارت کوم او غواړم چې یو تجارتي جواز ترلاسه کړم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې د جواز ویشنې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د معاملاتو او لارښوونې جواز اخیستل

د (          ) د (          ) زوی/لور

د (          ) ولایت(          ) ولسوالی اوسېدونکی غوښتنلیک

د قضایي ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! دوه کاله کېږي چې د معاملاتو او لارښوونې په یو دفتر کې د ځمکې، موټرو او دوکانونو پېرل او پلورل کوم اوس غواړم چې د (          ) خیرخانې سیمه کې د معاملاتو د لارښوونې دفتر رسمي جواز ترلاسه کړم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې د معاملاتو د جواز اړوندې اداري ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د ورثې وکالت خط

د (　　　) د (　　　) زوی/لور

او (　　　) د (　　　) زوی

او (　　　) زوی د (　　　) ولایت اوسېدونکي غوښتنلیک

د (　　) حوزې د وثیقو د محکمې ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د ۱۳۹۳ / / نېټې د وراثت خط پر بنسټ د (　　　)

حوزې د وثایقو د محکمې له مخې د اروانباد (　　　) د (　　　)

زوی وارثان تثبیت کړئ، او غواړو چې له دې وارثینو څخه

محترمه (　　　) د (　　　) لور د اروانباد ښځه د اروښاد (　　　)

د (　　　) زوی د تقاعد په ځای وټاکو نو ستاسو له محترم مقام

څخه هیله کېږي ترڅو په دې برخه کې د شرعي وکالت خط په

جوړېدو کې اړوندې اداري ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## دښوونځي دازموینې په پانه له سره غور

د(        ) د(        ) د زوی غوښتنلیک

دسید جمال الدین لیسې د (     ) ټولګي زده کونکی

دسید جمال الدین افغاني عالي لیسې محترمې اداري ته

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

محترما: دځلورنیم میاشتنی آزموینې نمرې دنګران لخوا اعلان شوې په ریاضي مضمون کی استاد راته ۲۰ پاینټه راکړي پداسې حال کې چې ما خو پوره سوالونه حل کړي ول زه په ذکر شوو نومرو قناعت نکوم او بیا له سره دغور غوښتنونکی یم هیله کوم په اړوند شعبه دپاڼې دتجدید نظر امر راکړی دابه مو ډېره مهرباني وي.

په درښښت

## د وراثت خط حصر

د (　　　) د (　　　) زوی د هرات

ولایت د دولسمې ناحیې اوسېدونکي غوښتنلیک

د (　) حوزې د وثایقو د محکمې ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! پلار مې (　　　) د (　　　) زوی د مالیې وزارت متقاعد مامور د وریښنې ناروغۍ له کبله د روان ۱۳۹۰ کال د غبرګولي په اتمه نېټه له نړۍ څخه سترګې پټې کړې او لاندې مستحق الارث ترې پاتې دي.

۱- (　　　) د (　　　) لور د (　　　) تذکرې لرونکې، مېرمنه

۲- (　　　) د (　　　) لور د (　　　) تذکرې لرونکې، لور

۳- (　　　) د (　　　) زوی د (　　　) تذکرې لرونکی زوی

غواړم چې د تقاعد د حقوقو تر لاسه کولو لپاره یې د وراثت حصر جوړ کړم هیله ده چې په دې برخه کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

**بښنلیک**

د (         ) د (        ) زوی د (          )

ولایت (         ) ولسوالي اوسېدونکي غوښتنه

د ختیځ زون څارنوالي ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د خیر خانې په سیمه کې د یوې ترافیکي پېښې چې په کال ۱۳۹۳ کې له یو کاستر موټر چې د (          ) پلیټ لرونکی د ډریور سره رامنځته شوې او له کبله یې زه ټپي شوی وم نو دا چې دا یو ناڅاپي پېښه وه او خدای تعالی زه هم له مرګ څخه وژغورلم غواړم چې نوموړي ته بښنه وکړم او په راتلونکي کې ورسره کومه دعوه نه لرم.

په درناوي

## د تبدیلي احصائیه

د کاکاخېل لمیټېډ غوښتنلیک

د کابل د ټرافیکو عمومي ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

قدرمنه! غواړم چې د یو عراده لاری موټر ۱۳۲۷ کابل چې ۱۹۹۴ ماډل او ژېړ رنګ لري احصائیه یې میدان وردګو ولایت ته بدله کړم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې پدې برخه کې راسره مرسته وکړئ او اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د ټکس لین امر

د کاکاخېل لمټید شرکت غوښتنلیک
د کابل ټرافیکو ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! غواړم چې د خپل یو عراده بس لپاره چې ۱۳۷۶ نمبر پلیټ، ۱۹۹۹ ماډل او سپین رنګ لرونکی دی د لښ چلولو ټکس لین امر واخلم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړي.

په درناوي

## د موټر چلولو نړیوال جواز اخیستل

د (          ) د (          ) زوی غوښتنلیک

د کابل د ټرافیکو ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! زما د موټر چلولو ملي جواز او پاسپورټ له دې پاڼې سره نښلول شوی اوس غواړم چې د موټر چلولو یو نړیوال جواز ترلاسه کړم هیله ده چې په دې برخه کې خپلې اړوندې اداري ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوې

## د موټر د رنګ بدلول

د فقير حسين لمتيډ شرکت غوښتنليک

د کابل د ټرافيکو عمومي محترم مديريت ته

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته!

قدرمنه! غواړم د يو عراده موټر چې ۳۴۵۳۳ شخصي پليټ، ۱۹۹۹ موډل او سپين رنګ لرونکی دی غواړم رنګ يې له سپين څخه په سور رنګ بدل کړم هيله ده چې پدې برخه کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

احمد ګوته (لاسليک)

## دبرښنا امر

د (          ) ولد (          ) غوښتنلیک

دخوست ښار دلومړی ناحیې اړوند

دخوست برښنا ریاست دروند مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

محترما : زه چې پېژندنه مې پورته ذکر شوې دښار په لومړی ناحیه کې یو کور لرم چې دغې کورمې مخکې له راتېل شویو جنګونو چې دافغانستان پر ښېدفاع خلکو تېرېدل تخریب شو او زه پخپله پاکستان ته مهاجر شوم. پدې ورځوکې بیرته خپل هېواد ته راستون شوی یم او خپل کورمې جوړ کړ زما ټولو ګاونډیان له برښنا اورښا ګټه پورته کوي زه هم غواړم چې خپل کورته دبرق مزی را کاږم نوستاسې دروند مقام ته عارض شوم چې په اوړند ځانګه امر وکړی چې زه هم دبرق نه مستفید شم.

په درناوي

## د پولیسو په اکاډمۍ کې شمولیت

زه (　　) د (　　) زوی د استقلال لیسې د
دولسم ټولګي فارغ التحصیل غوښتنلیک

د پولیسو اکاډمۍ قوماندانۍ محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د هغې مینې او علاقې له مخې چې د پولیسي له سپیڅلي مسلک سره یې لرم او هیله لرم چې خپلو هېوادوالو ته د رښتیني خدمت جوګه شم اوس غواړم چې د پولیسو په اکاډمۍ کې شامل شم ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې په دې برخه کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## په ملي اردو کې د سوق لپاره

زه (       ) د (       ) زوی د (       ) ولایت
(       ) ولسوالی اوسېدونکي غوښتنلیک

د ملي اردو د جلب جذب قوماندانی محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

قدرمنه! د خپل هېواد او هېوادوالو د خدمت لپاره غواړم چې د هیواد په وسلوالو ځواکونو کې ځای پر ځای شم نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې زما په شمولیت کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د استیناف غوښتنه (حق)

د ( ) د ( ) زوی د ( )

ولایت ( ) ولسوالی اوسېدونکي غوښتنلیک

د فراه ولایت د استیناف محکمې د ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د ( ) ګڼه / / ۱۳۹۲ نیټې سره سم د دویمې حوزې د مدني حقوقو محکمې زه په پینځه کاله تنفیذي بند محکوم کړی یم، چې زه یې د محکمې په دې پریکړه قناعت نه لرم ځکه دا پریکړه تر ډېره یو اړخیزه بڼه لري له همدې کبله ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې اړوندې اداري ته لازمه لارښونه وکړئ.

په درناوي

## د نوې پېژند پاڼې اخیستل

زه (        ) د (        ) زوی د (        ) ښار
د دویمې ناحیې اوسېدونکي غوښتنلیک

د کابل ولایت محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! تراوسه پورې مې د افغانستان د تابیعت پېژندپاڼه نه ده اخیستې او اوس غواړم چې خپل پېژندپاڼه واخلم پر همدې اساس ستاسو له محترم مقام څخه هیله کیږي چې په دې برخه کې خپلې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د پېژندپاڼې مثنی اخیستل

د (              ) د (              ) زوی د بدخشان
ولایت د (              ) ناحیې اوسېدونکي غوښتنلیک

د بدخشان ولایت محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! دوه میاشتې کیږي چې د تابیعت پېژندپاڼه یې مې سوځېدلې غواړم چې مثنی یې ترلاسه کړم ستاسو له محترم مقام څخه هیله کیږي چې په دې برخه کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## له بند څخه د خلاصون امر

د (                    ) د (                    ) زوی د کابل ولایت
قره باغ ولسوالی د (                    ) کلي اوسیدونکي غوښتنلیک

دافغانستان اسلامي جمهوریت لوی ښارنوالي محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د (          ) نیټې د ابلاغ پاڼې له مخې د (                    )
ولایت استیناف محکمې له / / ۱۳۹۰ نیټې څخه په شپږ کاله
تنفیذي بند محکوم کړی یم اوس د محکمې د پریکړې له
مخې زما د بند موده پوره شوې ده او د یادې ولسوالی د له بند
څخه د خلاصون غوښتونکی یم نو ستاسو له محترم مقام
څخه هیله کیږي چې زما په خلاصون کې اړوندې اداري ته
لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د کار درول (توقف)

زه ( عبدالله ) د ( عبدالرحمن ) زوی د ( ) ولایت
( ) ولسوالی اوسېدونکي غوښتنلیک

د ( ) ولایت د ښاروالی ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د بغلان ولایت په نوي ښار کې څلور بسوې ځمکه لرم چې پدې ځمکه مې ( ) د ( ) زوی غیر قانوني دعوه کړې پداسې حال کې چې هېڅ ډول شرعي اسناد له ځان سره نه لري او په یاده ځمکه یې د ودانی جوړولو کار پیل کړی او زموږ د حقوقي دعوې موضوع بغلان ولایت د حقوقو په ریاست کې ده نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې اړوندې ادارې ته لازمه لارښونه وکړئ ترڅو زما په ځمکه روان کار بند کړي.

په درناوي

**د پاسپورټ تمدید( ځنډ)**

زه (　　　) د (　　　) زوي/لور د کابل ښار

شپاړسمې ناحیې (　　　) بلاک اوسیدونکي غوښتنلیک

د کابل ولایت د (　　　) زون قوماندانی محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د هغې مینې او علاقې له مخې چې له ننداري سره یې لرم نو هوډ مې کړی چې د لرغوني مصر څخه لیدنه وکړم غواړم چې (　　　) نمبر پاسپورټ د (　　　) کلونو لپاره تمدید کړم ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې په دې برخه کې اړوندې اداري ته لازمه لارښوونه وکړئ. هیله مند یم چې په اړوند مرجع باندې را ته امر را کړئ.

په درناوي

احمد

# استیناف غوښتنه پاڼې

د (    ) ولد (        ) عرض پا ڼه

دکابل ښار ۱۲ ناحیې اوسیدونکي

دکابل ولایت استیناف محکمې محترم ریاست ته

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

محترما: زه غلام فاروق د محمد کریم زوی دعضویت په تور د ۴۵۸ لمبر پریکړې له مخې په ۱۳۹۶/۴/۳ نیټه در جرمونو په دیوان د کورني او بهرني امنیت دابتدایه محکمې البته دریمې حوزې، پرته دعدل او انصاف په پام کې نیولویې زه به دوه کاله تنفیذي بند باندې محکوم پرمجازات شوم نو ځکه د ابتداییه محکمې په پریکړه قناعت نلرم هیله ده زما داستیناف غوښتنې چاره په قانوني توګه ثبت شي دابه مو ډېره مهرباني وي.

په درناوي

## د تمیز غوښتنه

زه (            ) د (            ) زوی د (            )

ولایت (            ) ولسوالی اوسېدونکي غوښتنلیک

د افغانستان اسلامي جمهوریت د ستري محکمې محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! هغه حقوقي دعوه چې په استیناف محکمه کې لرم د (        ) ابلاغ پاڼې سره سمه د ابتدائیه محکمې حکم تائید کړی دی، او دا عمل یې زه یو اړخیز بولم او د محکمې په دې پرېکړه قناعت نه لرم او خپل حق غواړم ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې په دې برخه کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## په ملي امنیت په ریاست کې مقرري

زه (          ) د (          ) زوی د (          ) عالي

لیسې د دولسم ټولګي فارغ التعلیم غوښتنلیک

د ملي امنیت عمومي ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د هغې علاقې له مخې چې د ملي امنیت له مسلک سره یې لرم غواړم چې د امنیت عمومي ریاست په لیکو کې د کارکوونکي په توګه په دنده وګمارل شم ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې زما په مقررۍ کې اړوندې اداري ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د ښوونکي په توګه مقرږدل

زه (          ) د (          ) زوي/لور د (          ) اوسیدونکي
د محراب الدین عالي لیسې د دولسم ټولګي فارغ التحصیل غوښتنلیک

د کابل ولایت د پوهنې ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د هغې مینې او علاقې له مخې چې د ښوونې له مسلک سره یې لرم غواړم چې د کابل ښار دپوهنې ریاست اړوند په یو ښوونځي کې د ښوونکي په توګه وګمارل شم ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې زما د مقررۍ په برخه کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

# ښاروالۍ څخه د ځمکې اخيستل

د (        ) د (        ) زوی

د (        ) ولايت اوسېدونکي غوښتنليک

د افغانستان اسلامي جمهوريت د سوداګريزو خونو رسمي کارمند.

د کابل ښاروالۍ رياست محترم مقام ته!

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! په کابل کې په يو کرايي کور کې ژوند کوم دا چې له دې ناحيې څخه ډېر رنځ وړم او له زياتو ستونزو سره لاس اوګريوان يم نو ستاسو له محترم مقام څخه هيله کېږي چې پدې برخه کې راسره مرسته او اړوندې ادارې ته لازمه لارښونه وکړئ.

په درناوي

## د ښوونځي تبدیل پاڼه (سه پارچه)

د (         ) د (         ) لور د شهید ناهید
عالي لیسې د نهم ټولګي زده کوونکې غوښتنلیک

د عایشه دراني لیسې محترم مدیر حضور ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د لرېوالي له کبله نشم کولای چې د شهیدې ناهید لیسې ته د خپلو زده کړو لپاره ځان ورسوم نو غواړم چې ځان مې د عایشې دراني عالي لیسې ته بدل کړم هیله ده چې د شهیدې ناهید لیسې څخه زما په سه پارچه کولو کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## له ښوونځي څخه خارجېدل

زه (احمد) د (محمود) زوی/ لور د ( حسين خېلو عالي لېسې) د (نهم ) ټولګي زده کوونکي غوښتنليک

د ( ) ښار د پوهنې رياست محترم مقام ته!

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

ښاغليه! دا چې د اقتصادي ستونزو له کبله نشم کولی چې خپلو زده کړو ته د ورځې له خوا دوام ورکړم نو غواړم چې د ( ) لېسې د ( ) ټولګي څخه ځان خارج او پاتې زده کړې مې په شپې لېسې کې بشپړې کړم هيله ده چې په دې برخه کې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

# د ځمکې خرڅولو عرفي سند

اقرار کوم چې زه (          ) د (          ) زوی د (  .          )
تذکرې نمبر لرونکی د (          ) ولایت (          ) ولسوالی
اوسېدونکی یم چې نیم جریب شاوخوا ځمکه چې په (          )
سیمه کې شتون لري په دې حدودو کې محدوده شوې ده ددې
ځمکې شمال ته (          ) لوېدیځ ته یې (          ) ختیځ لور ته
یې (          ) او جنوبي لور ته یې (          ) عمومي سړک
موقیعت لري د دې ځمکې د هر جریب بیه شپږ لکه افغانی ده او
نیمایي هغه یې درې لکه افغانی کېږي زه ( احمد ) د ( حامد )
زوی چې د (          ) تذکرې لرونکی دی په قطعي ډول پلورم
چې د ځمکې پیسې راته په بشپړ ډول سپارل شوي او ځمکه مې
اخیستونکي ته وسپارله.

د پلورونکي لاسلیک یا ګوت نښه (     )
د پېرودونکي لاسلیک یا ګوته نښه (     )
د شاهدانو د ګوتو نښې (     ).

# د واده لپاره رخصتي اخیستل

زه (　　　　) د (　　　) زوی د افغانستان اسلامي جمهوریت

د (　　　　) وزارت برحاله مامور غوښتنلیک

د رئیس محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! په(.. / .. / ..) نیټه زما د واده مراسم ترسره کیږي زه د خپل واده د محفل نمانځلو لپاره لس ورځې رخصتی ته اړتیا لرم نو ستاسو محترم مقام ښخه هیله کیږي چې زما د لس ورځو رخصتیو په برخه کې اړوندې اداري ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د زوی لادرکي

زه (          ) د (          ) زوی د دویمې ناحیې د
اندرابي کوڅې اوسېدونکي غوښتنلیک

د کابل ولایت د (          ) زون قوماندانۍ محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

ښاغلیه! زوی مې (          ) د (          ) د چې (          )
کلن او د (          ) متوسطې ښوونځي د (          ) ټولګي
زده کوونکی دی د روان کال ۱۳۹۵ /   / نېټه د ښوونځي او
کور په لار کې لادره که شوی ستاسو محترم مقام څخه هیله
کوو چې زما د زوی په پیداکولو کې اړوندې ادارې ته لازمه
لارښوونه وکړئ ترڅو زوی مې پیداشي.

په درناوي

احمد د حامد زوی غوښتنلیک پاڼه

## حقوقي غوښتنه

زه (  ) د (  ) زوی د (  )
ولایت (  ) ولسوالي اوسېدونکي غوښتنلیک

د حقوق ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! زه په (  ) ښار اړوند سیمه(  ) کې یو کور لرم چې ترخنګ مو یو زرور او ځواکمن شخص چې (  ) د (  ) زوی غواړي یوه لوړه ودانۍ جوړه کړي او کار یې د کابل ښاروالۍ د مقرراتو په خلاف دی ځکه په دې سیمه کې تجارتي لوړې ودانۍ جوړول غیرقانوني کار دی او ټول ګاونډیان یې هم له دې کار څخه نارضایتي ښکاره کوي، ستاسو محترم مقام ته خبر درکول کېږي چې د یاد کار د مخنیوي لپاره اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د بند شخه په ضمانت خلاصول غوښتنلیک

زه (              ) د (              ) زوی غوښتنلیک

.د افغانستان اسلامي جمهوریت د لوی څارنوالی محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

بناغلیه! د یو ناسم تور له کبله زه په (              ) ولایت کې تر څارنې لاندې یم همدا ډول څېړنه او پلټنه شوې خو په دې اړه مستند اسناد او مدارک شتون نه لري او نه هم راباندې کوم جرم ثابت شوی د یادونې وړ یې بولم چې زه یو بیوزله او کمزوری انسان په کور کې بل مشر نه لرم او دا تور هم په شخصي عقدې سره پر ما پورې شوی نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې پدې برخه کې اړوندې اداري ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

حامد د محمود زوی غوښتنلیک

## د شرعي قبالې مثنی

د (          ) د (          ) زوی د (          ) ولایت اصلي اوسېدونکی او د (          ) ولایت فعلي اوسېدونکي غوښتنلیک

د کابل ولایت استیناف محکمې عمومي رئیس صاحب ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د (          ) ګڼې شرعي وثیقې له مخې د کابل ښار د دویمې حوزې محکمې د وثیقو وارث ثابت شوی یم.

(          ) ګڼه ۱۳۹۱ / / نېټې شرعي قباله چې زما پلار (          ) د (          ) د زوی د (          ) لمسي په نوم په تېرو جګړو کې سوځېدلې ده، میراث د مستحقو وراثانو په توافق غواړم چې د نوموړې قبالې انګړ (خرڅ، اجاره، ګرو) کړو نو د هغې مثنی ته ډېر ضرورت لرو، هیله ده، چې د مثنی دجوړولو لپاره په اړوندې اداري لازم احکام راکړئ.

په درناوي

## دوسیې ته لاس رسی

زه (        ) د (        ) زوی د

(        ) ولسوالی اوسېدونکی

دکابل ولایت د استیناف ښارنوالی ریاست محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! زما اړوند د ترافیکي پېښې هغه پانې چې د (        ) زون (        ) ولایت ښارونوالی / / ۱۳۹۱ نېټه چې زه یې تورن کړی وم نو مقابل لوري ابرا کړې او هماغه سند رسماً د (        ) ولسوالی ابتدائیه ښارنوالی ته په / / ۱۳۹۱ نېټه راجع شوی دی خو له بده مرغه پاملرنه ورته نه ده شوې او زه هم په ښارنوالی کې له نامالوم برخلیک سره شپې سبا کوم.او متضرر شخص هم راته ښښنه کړې نو ستاسو له محترم مقام څخه هیله کېږي چې زما دوسیې ته د لاسرسی په موخه خپلې اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د درملتون امر اخيستل

زه (          ) د (          ) زوی/لور

د (          ) ولايت (          ) ولسوالی اوسېدونکي غوښتنليک

د عامې روغتياوزارت محترم مقام ته!

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! زه د کابل ښار پل باغ عمومي اړوند په يوه ګڼ نفوسه سيمه کې ژوند کوم چې په ياده سيمه کې درملتون شتون نه لري او دسيمې اوسېدونکو په غوښتنه او دمناسبې ځمکې په شتون کې او د ناروغانو د اسانتياوو رامنځته کولو لپاره غواړم چې يو درملتون په (          ) نوم پرانيزم ستاسو له محترم مقام څخه هيله کيږي چې د درملتون جواز لپاره خپلې اړوندې ادارې ته لارښوونه وکړئ.

په درناوي

# داحصایې بدلول

د (            ) ولد (            ) عریضه

اصلي استوګنه ولایت (            )

دفاریاب ولایت امنیه قومندانی درووند مقام ته

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

محترما : زه چې پېژندنه مې پاس ذکر شوې اوس دفاریاب ولایت د اندخوی اوسېدونکي یم په کابل ښار کې کور او مځکه نلرم ټوله کورنې مې په یاد ولایت کې ژوند کوي دضرورت لمخې او راتلونکو ستونزو دمخنیو ې پخاطر غواړم داحصایې تبدیلي وکړم هیله ده له کابل څخه فاریاب ولایت ته داحصایه تبدیلي امر راکړی تر څو ژوندی یم دعا به درته کوم.

مننه

## د ښوونځي رغول

د لوګري کلي، شېخانو کلي، خواجه کلي، رحیم کلي او فتوح کلي
د اوسېدونکو غوښتنلیک

د افغانستان اسلامي جمهوریت د پوهنې وزارت محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! زموږ په سیمه کې د غازي عبدالله په نامه ښوونځی شته خو خلوېښت کاله کېږي چې دغه ښوونځي په کرایي کور کې دی څرنګه چې یادونه وشوه دغه سیمه ګڼ نفوس لرونکې ده او دا کرایي کور د ښوونځي د زده کوونکو د ځایېدو ظرفیت نه لري او زیات ماشومان د اوړي په ګرمۍ کې او د ژمي په سړه هوا کې تر کېږدۍ لاندې په خاورو کې خپل درسونه وایي چې دا خپل د درسونو د خنډ سبب ګرځي نو ددې لپاره د پوهنې له محترم وزارت څخه غوښتنه کوو چې د غازي عبدالله ښوونځي د ودانۍ رغولو لپاره اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## له تنخوا پرته رخصتی

د (            ) د (            ) زوی د (            ) لیسې برحاله ښوونکي غوښتنلیک

د (     ) لیسې مدیر صاحب محترم حضورته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د کورنیو ستونزو له کبله یوه نیمه میاشته نشم کولای خپلې سپیڅلې دندې ته دوام ورکړم نو ستاسو له محترم حضور څخه هیله کیږي چې له تنخوا پرته د یوې نیمې میاشتې رخصتی امر لپاره اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

## د علمي سیر په موخه د پاسپورټ اخیستل

د (　　　) د (　　　) زوی / لور د
(　　　) ولایت (　　　) ولسوالۍ اوسېدونکي غوښتنلیک

د افغانستان اسلامي جمهوریت د پاسپورټ محترم ریاست ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! غواړم چې د خپلو زده کړو لپاره د ترکیې هېواد ته لاړ شم او هغه زده کړې مې چې نیمې پاتې شوي بشپړې کړم نو هیله لرم چې د یو ټوک پاسپورټ په راکولو سره اړوندې ادارې ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

**په کابل امنیه قوماندانی کې مقرري**

د ( ) د ( ) زوی د

( ) ولایت ( ) ولسوالی اوسیدونکي غوښتنلیک

د کابل ولایت محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

محترما! په درناوي سره هیله کوم دا چې زه په ۱۳۹۰ کال د ( ) لیسې د دولسم ټولګي څخه فارغ شوی یم نو د دې لپاره چې د ځان او کورنی لپاره حلاله روزي پیداکړم غواړم چې ستاسو د مربوطاتو په کمبود کې په دنده وګمارل شم هیله ده چې په مقررۍ کې مې اړوندې اداري ته لازمه لارښوونه وکړئ.

په درناوي

# پر دوسیه له سره غور

د (            ) ولد (            ) عرض پانه

د (            ) اوسیدونکي

د افغانستان اسلامی جمهوری لوی څارنوالی محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

محترما : داسې عرض لرم : ورور مې جانداد نومیږي د ګلاب دین زوی دی دریوری په واسطه خپل ژوند پرمخ وړي خو په ترافیکي پېښسی کې چې دقلای لوګري به سیمه کې پېښه شوې نوموړی دترافیکو او پولیسو لخوا نیول شوی او دا دی ۲۳ میاشتې په توقیف کې ساتل شوی پداسې حال کې چې په پیښه کې چاته تاوان هم ندی رسېدلی مګر دکابل دتوقیف موظفین پدې اوړده موده کې زما د ورور پردوسیه هېڅډول غور او څېړنه ونکړه هیله ده زما د ورور پر دوسیه اړوند شعبې ته لارښوونه وکړیی چې له بنده و ژغورل شي دابه مو لطف او نېکنه کړی وي.

په درنښت

## حقوقي دعوا

مُدعي (          ) د(          ) زوی عریضه

د (          ) ناحیې اوسیدونکي

اسد اباد ښار دکنړ ولایت مرکز

دکونړ ولایت حقوقو ریاست محترم مقام ته

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

محترما : زه چې شهرت مې پاس ذکر شوی د (          ) کال

چنګا ښ په میاشت کې مې (          ) خان چې د (          )

زوی کیږي پوره درې لکه افغانی قرض حسنه ورکړي دي نوموړي

ویلي ول چې دغه یادې پیسې به په دریو میاشتو کې دننه ادا کوم

خو په خواشینی چې دهماغې نیټې څخه تر نن ورځې پورې یې

زما پیسې رانکړې کله چې یې غواړم ډول ډول بهانې جوړو ي زما

پیسې نه راکوي نو هیله کوم چه نوموړی را وغواړی او زما مبلغ

ترې حصول و فرمایی هیله ده به اړوند شعبه غوره لار ښوونه

وکړی.

د رښښت

# علمي سير، له موزيم نه ليدل

دغازي عبدالله خان اچکزي عالي لېسي
د ښوونکيو او زده کوونکيو عرض پاڼه
دکابل موزيم ښاغلی رييس!

السلام عليکم ورحمة الله وبركاته

محترمه : موږ ښوونکي او زده کوونکي چې شهرت دښوونځي مو به پورته پر پاڼه درج دی غواړو دپوهنيزو ليدنو کتنو يا علمي سير لپاره کابل موزيم ته ولاړ شو څکه زموږ زده کوونکو څو څوځله اداري ته وړانديز کړی وی چې موږ دخپلې زده کړې کچې لوړولو په موخه غواړو کابل موزيم نه ليدنه وکړو چې دخپلو نيکونو له سرخندانو او تاريخ څخه پوهاوی تر لاسه کړو، هغه اتلان چې دنړی لوی لوی امپراتوران او ظالمان يې په کونډوکړي ول په همدې خاطر دمکتب اداري له ښاغلي رييس دموزيم څخه غوښتنه کوي چې د ښونکيو زده کوونکيو دسيمينار او پوهنيز سير امر پراړوند شعبه عنايت وکړي.

مننه

## دنوې ګُلداني احداث

(        ) د (        ) زوی

دکابل ښاراتمې حوزې اوسېدونکی

دافغانستان اسلامي جمهوريت ښاروالي مُحترم رياست ته

السلام عليكم ورحمة الله وبركاته

محترما : زه چې شهرت مې پاس لیکل شوی عرض لرم، زما دکور په مخکې دمحلې خلک کثافات غورځوي څرنګه چې تودوخه ډېره ده او دغه ګندونه ډېر بدبو یونه کوي او زمونږ او خواوشا نورې کورېې له بوی څخه پوزې ته راغلي دي نو دمحترمې ښاروالی څخه په ډېر ادب هیله کوو چې به یو مناسب ځای کې یوه بله کثافت داني رامنځته کړی چې دمحلې خلک خپل پاک او ناپاک توکي به هغې کې واچوي دا به مونږ کار ترسره کړی وي.

په درنښت

## دشراب ځښلو مخنیوی

دلوګري کلي ، شېخانو کلي ، خواجه ګان کلي، فتوح کلي او اسفندیار کلي د اوومې ناحیې اوسېدونکو دعرض پاڼه

د اوومې ناحیې علماو شورا محترم مقام ته

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

اما بعد: محترما زه او دکلیوالو پېژندنه مې پورته ذکر شوېده يوه اندازه ستونزې په اوومه ناحیه کي رامنځته شوې دي څرنګه چې تاسې ته بهتره مالومه ده الحمدلله د اوومې ناحیې مجاهده پروره اوسېدونکي دشریعت داحکامو پابند دي، څرنګه چې موږ ته خبر را رسېدلی چې ددوغ آباد به بازارکې دشرابو دوکانونه پرانیستل شوي ګرچه که هغوی شراب په ښکاره ډول نشي خر خولی نو چې موږ څو تنو کلیوالو داموضوع له نږدې وڅارله موږ ته په ډاګه شوه چې پدې دوکانونوکې شراب پلورل کې دل او دکلي خلکو پد ي اړه له پخوا خبرول هغوی دغه موضوع له موږ سره شریکه کړه نو خکه مو دغه موضوع به اړه تاسې ته خبر درکړ چې تاسې عالي مقام پدې هکله لازم اقدام تر سره کړی او کنه نو دکلي خلک وایي چې په یو ساعت کې دننه دغه دکانونه له منځه وړو پدې خاطر له تاسې محترمو علماو څخه غواړو چې پدې اړه پام راو ګرزوی. مننه

## داستهلاک شوي جایداد اسناد تر لاسه کول

(        ) د زوی (        ) عرض پاڼه
د کابل ولایت اوومې حوزې اوسېدونکی

دافغانستان اسلامي جمهوري هېواد د ښاروالی ریاست مقام ته
السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

محترما: زه چې پېژندمه مې پورته لیکل شوې ده زما یوه ټوټه مځکه په اوومه ناحیه کې ده او دوه کاله کېږي چې د ښاروالی محترم ریاست دغه مځکه استملاک کړیده ګرکه بنده څوځلی ښاروالی ریاست ته عارض شوی یم مګر ښاروالي سره لدې په بېلابېلو بهانو زما دمځکې د اسنادو چارې ځندوې نو ځکه زه اړ شوم چې تاسې ته عارض شم ترڅو زما د اسنادو دطی مراحل کولو امر پر مربوطه شعبه عنایت کړی او هدایت ورته وکړی عین شفقت به مو وي.

په درناوي حفیظ الله "لشکري"

## فرهنګي غلوته خبرداری

داسې خلک دې آګاه وي که چېرې په دنیا کې هغوی د نوروهغه مال په ناحقه چې دده حق پکې نه وي په ببلاببلو بهانويې وخوري سبا به دخدای سبحانه وتعالی پرو ړاندې څه ځواب ووايي؟ نو ای وروره که حاجي يې، که دقرآن شريف قاري اوکه امي يې خبردار اوسه چه. سبا به دمحشر پر ورځ ددې سرقتونو ځواب ستا پرغا ړه وي اود هغه چا لاس چې تايې مال په ناحقه تلف کړی، ستا په ګريوان کې وي نو هغه مهال به د ځلورويشت زره عالم او دخدای په و ړانډ ې څه ځواب ووايې؟

نو ګرانه دوسته پر دې خبره بسنه وکړه چه (وَاللَّهُ خَيرُ الرَّازِقِينَ) الله غوره روز ي ورکوونکی دی لدېنه وروسته دخپل ځان او خپلې کورنی لپاره دحلا لې روزی په لټه کې اوسه نه دحرامې روزی به لټه کې.

ستاسې ورور حفيظ الله "لشکري "

## دويم خپرکی عمومي برخه

## د ژرندې د ماشین اخیستل او پلورل

زه (          ) د (          ) زوی د (          ) ولایت

(          ) ولسوالی اوسېدونکی.

اقرار کوم چې د ژرندې ډېزلي ماشین یوه پایه په دوه لکه افغانی چې نیمایي یې یو لک افغانی کېږي په محترم(          ) د (          ) زوی د (          ) ولایت (          ) ولسوالی اوسېدونکي په نغدو پیسو پلورم چې یادې پیسې راته راکړل شوي دي او په بدل کې مې ورته د ماشین اسناد ورکړل د سند تر لیکلو وروسته هر ډول مسؤلیت به د (          ) په غاړه وي او پخپل اقرار کې ربنتینی یم.

په درناوي

## باطل خط

زه (              ) د (              ) زوی د (              ) ولایت

اقرار کوم یو دوکان چې په شمالي سرای کې موقیعت لري او هر کال په پینځوس زره افغانیو چې نیمایي یې پینځه ویشت زره کبېږي محترم(              ) د (              )زوی ته په کرایه ورکړی و خو له بده مرغه چې سند یې راځخه د کابل پروان په لویه لاره ورک شوی او په راډیو کې له اعلان سره هم پیدا نه شو نو / / ۱۳۹۰ تاریخ ځخه راپدېخوا باطل شوی او هر کله چې دا سند پیداشي د باور وړ نه دی او په بدل کې (              ) د (              ) زوی ته د شاهدانو په شتون کې بل سند ورکړل شو پخپل اقرار کې ربتینی یم او په راتلونکي کې له محترم (              ) د (              ) زوی سره کومه دعوه نه لرم.

په درناوي

## د فاتحې خبرتیا

عبدالحلیم لشکري، عبدالحفیظ لشکري او عبدالصبور لشکري خامن.

د ګمرکاتو مدیر الحاج محمدالله لشکري، د افغانستان بانک کارمند محمد راشد او د ظفر ۲۱۰ قول اردو قوماندان محمد هارون لشکري ورونه.

د کابل پوهنتون محصل بکتاش محمدي، د دولسم ټولګي زده کوونکی محمدناصر، او عبدالله وربرونه.

سکندر سکندري او محمد یاسین رسولي اوښیګان.

د حج اوقافو وزارت کارکوونکي، سید رسول حقمل، نثاراحمد او غلام قادر لشکري کاکاګان.

د الحاج عبدالتواب د مړینې له کبله چې جنازه یې نن پنجشنبه په خپلې پلارنی هدیره کې خاورو ته وسپارل شوه دوستانو ته خبر ورکوي چې د اروانباد فاتحه سبا جمعه له اتو څخه تر نهو بجو پورې په نبوي جومات کې اخیستل کیږي.

انالله وانا الیه راجعون

# بلنلیک

محترم بشارت خپرندویه ټولنه

د.ا.ا.ج د اطلاعات او فرهنګ وزارت دکاپي رایت امریت

د دوشنبې ورځ ۱۳۹۴/۱۲/۶ ن ځونېته دکاپي رایت قانون دپوهاوي ورکونې خپرونه د خپرندویه ټولنو اوکتاب پلورونکو سره یوځای دغه قانون دیوې ورځې لپاره دکابل په ښارکې نمانځل کېږې ستاسې ګډون پدې روزنیزه خپرونه کې دخوښې لامل کېږی چې له خوابه دیو خپرندوی په صلاحیتونو خبر شې او له بله پلوه یو لړ تخلفات چې دناشرانو محترمو ترمنځ ترسره کېږي وکولی شو د داسې سیمینارونو په کولوله هدفي تخلفاتو مخنیوی وکړو چې دنشر او طباعت سیستم مو په هېواد نورهم قانوني بڼه غوره کړي او ټول خلک دکاپي رایت په قانون پوره آګاهي پیدا کړي چې پدې لاره کې دچاحق تلفي و نشي پدې هیله چې بشارت خپرندویه ټولنه د اطلاعاتو فرهنګ دې بلنې ته لبیک ووایي او پدې پرتمینه غونډه کې ګډون و کړي. په درنښت

احمد سیر سحر داطلاعاتو او کلتور وزارت د USID برخي

## د کرایي دوکان قرارداد لیک

اقرار کوم زه (		) د (		) زوی د (		) شمېرې
تذکرې لرونکی د (		) ولایت اصلي او د بګرامیو اړوند کابل
ښار اتمې ناحیې فعلي اوسېدونکی، ددې لپاره یو باب دوکان چې
د سبزي په مارکیټ دی او زما خپل ملکیت دی یاد دوکان مې
(		) د (		) زوی ته چې د څرخي پل اوسېدونکی دی
د میاشتې په دوه زره افغانۍ چې نیمایي یې زر افغانۍ کېږي د یو
کال لپاره کرایه ورکړی او شپږو میاشتو کرایه یې مخکې راکړې
ده او پاتې نوره یې د تلې په میاشت کې راکوي.
دوکان په لاندې شرایطو سره په کرایه ورکړل شوی دی...
۱: د پاکوالي او برېښنا اړوند محصول د کرایه ورکوونکي په غاړه
دي.
۲: د دواړو دهوکړې په صورت کې د قرارداد بل کال ته څنډېدلی شي
زه په خپل اقرار کې رښتینی یم. په درناوي.
د دوکان د مالک لاسلیک یا ګوت نښه (		)
د کرایه ورکوونکي لاسلیک یا ګوت نښه(		)

## قرار داد لیک

زه عبدالبصیر د دین محمد زوی د بدخشان ولایت فیض اباد ښار اوسېدونکی.
د اتلس ټوکو انګلیسي ژبې ګرامر کتابونه چې ۱۲۰ زره او نیمایي یې ۶۰۰۰ زره افغانی کېږي د بشارت خپرندویه ټولنې مسؤل حفیظ الله لشکري سره قراداد کړی چې یاد کتابونه به له نن تاریخ څخه تر شلمې نېټې پورې چاپ او ماته سپاري.
یادابنت: ټولې پیسې چې له لومړي څخه تر شپږم ټوک پورې ۱۲۰۰۰۰ افغانی کیږي نیمایي یې د بشارت خپرندویه ټولنې مسؤل حفیظ الله لشکري ته ورکړل شوي دي او پاتې نورې به یې د کتابونو تر سپارلو وروسته ورکړل شي په خپل قرارداد کې ربښتینی یم.

په درناوي

د قرار داد کوونکي او شاهدانو لاسلیک یا ګوت نښه

( ) ( ) ( ) ( )

## د وکیل له لوري د کتاب د چاپ حق خرڅول

له محترم (           ) څخه نړی مننه چې له پورتني تاریخ څخه د (           ) کتاب چاپ وکالت او پاتې نور یې محترم (           ) ورور ته ورکړی او هغوی د کتاب سمولو او چاپ په مسئله کې له بشارت خپروندیه ټولنې سره زما له خوا په بشپړه توګه استازیتوب کوي.

د هغوی د لا بریالیتوبونو په هیله!

د لیکوال لاسلیک یا ګوت نښه

زه (           ) د (           ) زوی چې د (           ) له خوا د (  مرګ وصال ) کتاب چاپ په برخه کې له بشارت خپرندویه ټولنې سره وکالتا او دواک خاوندیم.

نو د ( مرګ وصال ) کتاب چاپ حق مې په بشارت خپرندیه ټولنې په ۲۸۰۰۰ افغانۍ چې نیمايې یې ۱۴۰۰۰ افغانۍ کېږي خرڅ کړ وروسته له دې د دې کتاب د چاپولو حق بشارت خپرندویه ټولنې پورې اړه لري په خپل اقرار کې ربښتنی یم.

د وکیل او شاهدانو لاسلیک یا ګوت نښه (           ) (           ) (           )

## فرهنګي غلوته خبرداری

داسې خلک دې آګاه وي که څېرې په دنیا کې هغوی د نوروهغه مال په ناحقه چې دده حق پکې نه وي په بېلابېلو بهانویې وخوري سبا به دخدای سبحانه وتعالی پرو ړاندې څه ځواب ووایي؟ نو ای وروره که حاجي یې، که دقرآن شریف قاري اوکه امي یې خبرداراوسه چه سبا به دمحشر پر ورځ ددې سرقتونو ځواب ستا پرغا ړه وي اود هغه چا لاس چې تایې مال په ناحقه تلف کړی، ستا په ګریوان کې وي نو هغه مهال به د څلورویشت زره عالم او دخدای په و ړاند ې څه ځواب ووایې؟

نو ګرانه دوسته پر دې خبره بسنه وکړه چه (وَاللّٰهُ خَيرُ الرّازِقِينَ) الله غوره روز ي ورکوونکی دی. لدېنه وروسته دخپل ځان او خپلې کورنی لپاره دحلا لې روزی په لټه کې اوسه نه دحرامې روزی به لټه کې.

ستاسې ورور حفیظ الله " لشکري "

**دریم څپرکی د رقعو برخه**

# د ناروغۍ رقعه

د ( ) د ( ) زوی د ( ) لېسې د
( ) ټولګي زده کوونکي د ناروغۍ رقعه

د ( ) لېسې محترم سرښوونکی صاحب !

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! زه ( ) نن نشم کولای چې د ناروغۍ له کبله ښوونځي ته لوست لپاره حاضر شم هيله لرم چې د سوبتيا په کتاب کې ناسوب ونه شمېرل شم.

په درناوي

احمد لاسليک

## د ضروري رقعه

زه ( شاهدالله) د ( حفيظ الله ) زوی د ( ) ښوونځي
د ( ) ټولګي زده کوونکی ضروري رقعه

د کابل د الازهر لېسې محترم مدير صاحب!

السلام عليكم ورحمة الله وبركاته

قدرمنه! زما زوی ( ) نن ورځ د يو ضروري کار له کبله نشي کولی چې ښوونځي ته د لوست لپاره حاضر شي هيله ده چې د سوبتيا په کتاب کې ناسوب ونه شمېرل شي.

په درناوي

حفيظ الله د شاهدالله پلار

## د تفریحي رخصت رقعه

د (　　　) د (　　　) زوی د بګرامیو
نساجي فابریکې کارکوونکي غوښتنلیک

د بګرامیو د نساجي فابریکې قدرمند رئیس ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! د کال په اوږدو کې مې له خپلې کلنی رخصتی څخه ګټه نه ده پورته کړې اوس ستاسو له محترم مقام څخه هیله لرم چې زما د تفریحي رخصتی شل ورځې موده راته رخصت راکړئ ترڅو له دې څخه په ګټې اخیستنې سره خپله ستړیا لرې کړم.

په درناوي

محمد یونس

د بګرامیو د نساجي کارکوونکی

## د یو مامور د ناروغۍ رقعه

د (          ) د (          ) زون د افغان اعلاناتو

د ریاست برحاله مامور  د ناروغۍ رقعه

د افغان اعلاناتو محترم رئیس صاحب ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

قدرمنه! تېره ورځ راباندې د زړه حمله راغلې وه چې تراوسه د ابن سینا په په صدري روغتون کې بستر یم او د زړه د عملیات شونتیا مې هم شته نو ستاسو له محترم حضور څخه هیله لرم چې لومړی راته د روغتیا دعا وکړئ او بیا له تنخوا پرته لس ورځې رخصت راکړئ.

په درنښت

د اعلاناتو برحاله مامور

د لاسلیک ځای

## اوږد مهاله ضروري رقعه

د (         ) د (         ) زوى د محاسبې رياست
برحاله كاركوونكي اوږدمهاله ضروري رقعه

د عدليې وزارت د محاسبې رياست محترم مقام ته!

السلام عليكم ورحمة الله وبركاته

قدرمنه! له څو كالو راهيسې په كرايي كورونو كې ژوند كوم اوس هوډ لرم چې د ځان لپاره كور جوړ كړم كه امكان يې وي نو ماته دې له تنخوا پرته دوه مياشتې رخصتي راكړل شي ترڅو مې د بې كورۍ ستونزه حل شي له همدې كبله اوږدمهاله رخصتي ته اړتيا لرم هيله ده چې اړوندې اداري ته لازمه لاربنوونه وكړئ.

په درناوي

**فرهنگي غلوته خبرداري**

داسې خلک دې آګاه وي که چېرې په دنیا کې هغوی د نوروهغه مال په ناحقه چې دده حق پکې نه وي په بېلابېلو بهانویې وخوري سبا به دخدای سبحانه وتعالی پرو ړاندې څه ځواب ووایي؟ نو ای وروره که حاجي یې، که دقرآن شریف قاري اوکه امي یې خبردار اوسه چه سبا به دمحشر پر ورځ ددې سرقتونو ځواب ستا پرغا ړه وي اود هغه چا لاس چې تایې مال په ناحقه تلف کړی، ستا په ګریوان کې وي نو هغه مهال به د خلورویشت زره عالم او دخدای په و ړاند ې څه ځواب ووایې؟

نو ګرانه دوسته پر دې خبره بسنه وکړه چه (وَاللَّهُ خَيرُ الرَّازِقِينَ) الله غوره روز ي ورکوونکی دی لدېنه وروسته دخپل ځان او خپلې کورنی لپاره دحلا لې روزی په لټه کې اوسه نه دحرامې روزی به لټه کې.

ستاسې ورور حفیظ الله "لشکري"

**خلورم څپرکی اداري برخه، مکتوب، استعلام، وړاندیزونه،**

**د یو برحاله مامور دندې**



**د بهرنیو چارو جلیله وزارت**

**اداري ریاست**

**دانسجام دچارو مدیریت**

مکتوب

قدرمنه! د مقرراتو او دندو لایحو ته په پام سره یو تن دویم رتبه مامور د ۵۳۵۶ نمبر مکتوب او / / ۱۳۹۱ تاریخ سره سم نوی په دنده ګمارل شوی او زموږ په تشکیلاتو کې خلور ماموران دنده ترسره کوي.

ښاغلی (     ) د (     ) زوی چې یو تجربه لرونکي شخص د اداري مامور په توګه په دنده ګمارل شوی ترڅو د وارده، صادره، حاضرۍ اخیستلو، ناسوبتیا د چارو او د دفتر ټولې چارې د لومړي شمېرې فورم په اساس په دې اداره کې ترسره کړي تاسو مو په جریان کې واچولئ تر څو له موضوع خبر اوسئ.

په درنښت

دانسجام مدیریت



**د مقرری مکتوب**

Islamic republic of Afghanistan

**د افغانستان اسلامي جمهوریت د عامې روغتیا وزارت**

**د بشري منابعو ریاست**

د مکتوب شمیره ۴۹۸۴

**د استخدام امریت**

۱۳۹۴/۱/۲۹

د بشري خواک او د کار د اړیکو د تنظیم د عمومي ریاست محترم ·

مقام ته!

د ښاغلي ( ) د ( ) زوی د ( ) نمبر

تذکرې لرونکی ( ) ولایت اوسېدونکی د ( ) په

توګه د وزارت په مربوطاتو کې په پام کې نیول شوی ·

په دې توګه نوموړی تاسو ته درولېږل شو ترڅو له خپل لوري يې

په رسمي توګه د جواز په صادرولو سره په دې اداره کې په دنده

وګمارئ·

په درنښت

احمد جاوېد خیر اندیش

د بشري منابعو رئیس

# د روغتیایي معاینو فورمه



د افغانستان اسلام جمهوریت | افغانستان جمهوری اسلامی

د کورنیو چارو وزارت | وزارت امور داخله

**Islamic republic of Afghanistan**

## دبشري منابعو رئیس

## د استخدام امري

استعلام پاڼه

| نیټه | غوښتنه | احکام |
|---|---|---|
| | د څېړنې او روغتیا قوانینو محترم ریاست ته!<br>د ښاغلي/ اغلې (  ) د (  ) زوی دکارکوونکي په توګه د(  ) وزارت مربوطانو کې په پام کې نیول شوی دی چې نوموړي ددې استعلام په ذریعه تاسوته معرفي او دروليږل شو ترڅو یې د روغتیامعافیت بشپړ او موږ ته پام راکړئ.<br>په درنښت<br>ګل محمد محمدي<br>د بشري منابعو رئیس | |

## دکار د جواز مکتوب

**Islamic republic of Afghanistan**

**د افغانستان اسلامي جمهوریت**

**د　　　　وزرات**

**د بشري منابعو ریاست**

**د استخدام امریت**

---

د بشري ځواک او د کار د تنظیم د اړیکو د تنظیم عمومي ریاست ته!

(　　　) د (　　　) زوی د (　　　) نمبر تـذکرې لرونـکي

(　　) ولایت اوسېدونکی د (　　　) په توګه د وزارت په مربوطاتو

کې په پآم کې نیول شوی دی.

نو نوموړی تاسو ته درولېږل شو ترڅو ورته د کار جواز په صادرولو د

خپلې ادارې له لوري په رسمي توګه په کار وګمارئ.

درنښت

ګل محمد احمدي

د بشري منابعو رئیس

## د ناسوبتیا له کبله د کارکوونکي انفکاک



د افغانستان اسلامي جمهوریت افغانستان جمهوري اسلامی

د وزارت وزارت

Islamic republic if Afghanistan

د بشري منابعو ریاست

د استخدام امري

| نیټه | غوښتنه | احکام |
|---|---|---|
| | د ( ) وزارت محترم مقام ته! وړاندیز کېږي.<br>د ( ) ریاست د اداري مدیریت د ( )<br>نمبري ۱۳۹۲ نیټې له مخې شاغلی ( )<br>د ( ) زوی د ( ) بست کارکوونکی اجرایه<br>مدیرد نوموړي اداري دی. له / / ۱۳۹۲ نیټې<br>څخه له دندې ناسوب شوی دا چې ناسوبتیا یې<br>له شلو ورځو زیاته ده په همدې اساس د نوموړي<br>انفکاک له / / ۱۳۹۲ د افغانستان د اسلامي دولت<br>د مامورینو د قانون د ( ) مادې د ( ) فقرې<br>د لارښوونې په اساس وړاندیز کوو. هیله ده چې<br>قبول یې کړئ.<br>درنـښـت<br>گل احمد احمدي د بشري منابعو رئیس | |

## د مړینې له کبله د مامور انفکاک



افغانستان اسلامي جمهوري　　　　جمهوری د اسلامی افغانستان

د (　　　) وزارت　　　　وزارت (　　　)

ISLAMIC REPUBLIC OF AFGHANISTAN

وړاندیز پاڼه　　　　د بشري منابعو رئیس د استخدام امریت

| نېټه | غوښتنه | احکام |
| --- | --- | --- |
| | د (　　　) وزارت محترم مقام ته!<br>د ( ریاست عمومي اداري مدیریت د (　　　)<br>شمېرې / ۱۳۹۱ نېټې د استناد پاڼې له<br>مخې ښاغلی(　　　) د (　　　) زوی د<br>(　　　) رتبه (　　　) مسؤل کارکوونکی له<br>نړۍ څخه سترګی پټې کړې په دې اساس د<br>نوموړي د وفات له کبله هغه د / / ۱۳۹۲<br>نېټې څخه وړاندیز کوو هیله چې قبول یې<br>کړئ.<br>درنښت<br>ګل احمد احمدي<br>د بشري منابعو رئیس | |

## د شهادتنامې د ویش استعلام



د افغانستان اسلامي جمهوریت جمهوري اسلامي افغانستان
د پوهنې وزارت وزارت معارف
ISLAMIC REPUBLIC OF AFGHANISTAN
د ثانوي تدریساتو ریاست اداري مدیریت

| استعلام | نیټه | ځواب |
|---|---|---|
| د کابل ښار د پوهنې ریاست محترم مقام ته!<br>د ۵۶۴۳۳ نمبر مکتوب پر بنسټ تاسو ته خبر<br>درکول کیږي چې د زده کوونکو د شهادتنامو لاسلیک په موږ پورې اړه لري د اداري ریاست د ثانوي تدریساتو موضوع د پوهنې وزارت مقام ته د زده کوونکو اړوند ټول اړین مالومات موږ ته راولیږئ چې وروسته به بیا تاسو ته لازمې لارښوونې وشي.<br>په درنښت.<br>امیر محمد "باختري"<br>اداري مدیر | | |

## صادره مکتوب



۲۴۷۶

۱۰ ۲ ۱۳۹۴

د کابل ولایت د مخزن ریاست

اداري مدیریت

د وثایقو امریت

قدرمنه! د سترې محکمې منیع مقام د مربع ښار د وثایقو د تحریر د ریاست د وثایقو د تحریر تعلیمنامې ټولو خپلو اړونده څانګو ته ویشلي دي او د اجرا وړ دي خو تر ۱۳۹۱/۵/۸ پورې زموږ اداري ته نه دي رارسېدلي او موږ د مخکنۍ تعلیمنامې له مخې اجرات کوو او دا اجرات د مراجعینو د دویم ځل لپاره له ستړیا تشې نه دي، دا چې د موضوع په تړاو مو مالومات درکړ ستاسو د راتلونکو لارښوونو په هیله! احترامانه خبر در کړل شو څرنګه چې لازم ګڼئ اجرات وکړئ.

په درنښت

د کابل مخزن د وثایقو امر

لاسلیک

# د هوکړې استعلام

د افغانستان اسلامي جمهوریت                    جمهوری اسلامی افغانستان

د (          ) وزارت                    وزارت (

ISLAMIC RE[illegible]FGHANISTAN

د بشري منابعو ریاست                    د انسجام مدیریت

| ځواب | نیته | استعلام |
|---|---|---|
| | | ښاغلی (          ) د (          ) زوی / لور چې<br>ځان یې ستاسو (          ) ته در پېژندلی په<br>یو بېل غوښتنلیک کې  یې د وزارت په<br>مربوطاتو کې د خپل ځان تقرر غوښتی دی<br>په هوکړې په صورت کې د لاندې موادو په<br>اړه معلومات ورکړئ.<br>۱ـ دفتر پېژندنې سوانح او سوابق لري که<br>نه؟<br>۲ـ له امرانو سره چلند او ژوند څنګه ده تر<br>څنګ یې د دوی حاضري په اړه؟<br>۳ـ کومه محکماتي دوسیه چې د تقرر مخه<br>نیسي لري که نه؟ د هوکړې سره سم یې د<br>سوانحو لنډیز راولېږئ. ګل محمد احمدي<br>د بشري منابعو رئیس |

# د تشویقي تنخوا وړاندیز



د افغانستان اسلامي جمهوریت		جمهوری اسلامی افغانستان
د کورنیو چارو وزارت		وزارت امور داخله
ISLAMIC REPUBLIC OF AFGHANISTAN
د دولتي چارو ارشد معینیت
ځانګړې عملیاتي قطعه

وړاندیز پاڼه

| ځواب | وړاندیز | نیټه |
|---|---|---|
| | قدرمنه! د کورنیو چارو وزارت د محترم مقام ۶۷۶۴۴۳ نمبر امر له مخې چې په لاندې ډول ذکر شوی هغه شمېر افسران چې پخپلو دندو کې یې له خانه ورتیا ښودلې او د مسؤلین له لوري تائید شوي دي د مالي ریاست له لوري ورته د یوې میاشتې تنخوا په تشویقي ډول ورکول کیږي د بورتني امر پر بنسټ دویم څارن (      ) د (      ) زوی چې یو مسلکي او با دسپلینه افسر دی په خپلو زیاتو دندو کې یې له خانه ورتیا ښودلې چې د ستاینلیک په ترلاسه کولو هم بریالی شوی غوښتنو کوو نوموړي د یوې میاشتې تشویقي تنخوا ورته ورکړې؛ ترڅو د نورو بریالیتوبونو لپاره لا وهڅول شي.<br>درنښت<br>لومړی بریدمن احسان الله | |

**د تقرر مکتوب**



د افغانستان اسلامي جمهوریت　　جمهوری اسلامی افغانستان

د کورنیو چارو وزرت　　وزارت امور داخله

ISLAMIC REPUBLIC OF AFGHANISTAN

د بشري منابعو ریاست

د استخدام امریت

مکتوب

محترم (　　　　) د (　　　　) خوي/لور چې ځان مې تاسو ته

درپیژندلی دځانګړی غوښتنې په ترځ کې دخپل تقرر تبدیلی غوښتنلیک

اړوند وزارت ته وړاندې کوم د هوکړې په صورت کې هیله ده د لاندې

موارد و په اړه مالومات راکړئ.

۱ـ د سوانحو او سوابقو بشپړ دفتر لري او که نه؟

۲ـ له امرانو او مراجعینو سره یې چلند څنګه ده او د دندې حاضری ته

پابند ده او که نه؟

۳ـ کومه محکمې دوسیه چې د هغه د تقرر مخنیوي وکړي شته او که نه؟

۴ـ نوموړې څو کاله دولتي خدمات ترسره کړي؟

د هوکړې په صورت کې د هغه د سوانحو دلندیز یوه ورقه راولیږئ تر څو

په دې اړه لازم اجرات وشي.

په درناوي

تاج محمد وزیري

د بشري منابعو ریاست

## فرهنګي غلوته خبرداري

داسې خلک دې آګاه وي که چېرې په دنیا کې هغوی د نوروهغه مال په ناحقه چې دده حق پکې نه وي په بېلابېلو بهانویې وخوري سبا به دخدای سبحانه وتعالی پرو ړاندې څه ځواب ووایي؟ نو ای وروره که حاجي یې، که دقرآن شریف قاري اوکه امي یې خبردار اوسه چه سبا به دمحشر پر ورځ ددې سرقتونو ځواب ستا پرغا ړه وي اود هغه چا لاس چې تایې مال په ناحقه تلف کړی، ستا په ګریوان کې وي نو هغه مهال به د خلورویشت زره عالم او دخدای په و ړاند ې څه ځواب ووایې؟

نو ګرانه دوسته پر دې خبره بسنه وکړه چه (وَاللّهُ خَيرُ الرّازِقِينَ) الله غوره روز ي ورکوونکی دی لدېنه وروسته دخپل ځان او خپلې کورنی لپاره دحلا لې روزی په لټه کې اوسه نه دحرامې روزې به لټه کې.

ستاسې ورور حفیظ الله "لشکري"

**پنځمه خپرکی لیکونه**

**خپل ملګري ته د یو محصل لیک**

سلامونه او نیکې هیلې د (            ) له لوري خپل ګران ملګري ته په نیک ساعت کې وړاندې کوم او د تل لپاره دې له خدای تعالی څخه سر لوړی او تاند غواړم.

ګرانه وروره(            ) له هغه وروسته چې ښکلی لیک دې ماته راورسېد او خبر شوم چې لوژستېک شرکت دې پرانیستی ډېر خوښ شوم هېره مې نشي چې ماما مې په هرات ولایت کې د تکې یو لوی شرکت لري که چېرې دې د هغه د کارخانو موادو ته اړتیا پیداکړه نو ماته وواېه چې زه ورته لیک واستوم ترڅو په بیو کې درسره مرسته وکړي او تر یوې مودې یې په پور هم درکړي چې ستا کاروبار لاهم پیاوړی شي.

(    ) ملګریه دوه میاشتې کیږي چې د سهار له لوري په دعوت پوهنتون کې شامل شوم او زده کړې مې په ډېره ښه توګه روان دي او له بل لوري په جلال اباد ښار کې په یو شرکت کې هم کار کاوم په پای کې دې نور ارزښتناک وخت نه نیسم په ښېونکي ښښتن تعالی دې سپارم د ژر لیدو په هیله!

په درناوي

ستا خوږ ملګری (            )

## خپل مور پلار ته د یو برمته لیک

بسم الله الرحمن الرحیم

سلامونه او نیکې د (            ) له خوا خپل ګران پلار او مهربانې مور ته په نیک ساعت کې وړاندې کوم او له خدای تعالی څخه مو تل روغ رمټ غواړم او هیله لرم چې د عزت جامې به مو تن وي او د کفارو له ظلم او ستم څخه په امن کې اوسئ.

ګران پلاره او مهربانې مورې که زما د لیدو تلوسه لرئ نو شکر دی روغ رمټ او ښه یم او ستاسې روغتیا له ستر څښتن تعالی څخه غواړم.

مهربانې مورې زه اوس د ګوانتنامو له بند څخه بګرام ته استول شوی یم او په نږدې راتلونکي کې به زما بې ګناهي ثابته شي یادونه یې باید وکړم چې په ګوانتانامو کې کفار په مسلمانانو ډېر ظلمونه کوي تاسو او نورو خپلوانو ته هم وواياست چې مسلمانانو ته دعا وکړي ترڅو د کفارو له منګولو وژغورل شي په پای کې مو په خدای ﷻ سپارم.

په درناوي

ستاسو ګران زوی (            )

**يو ملګري ته د امانتدارۍ ليک**

بسم الله الرحمن الرحيم

سلامونه او نيکې هيلې د (     ) له طرفه خپل ګران ملګري (     ) ته په نيک ساعت کې وړاندې کوم او روغتيا مو له څښتن تعالی څخه غواړم

زما ګرانه وروره (     ) وروسته له دې چې ستا ښکلی ليک ماته راورسېد څښتن تعالی شته چې ډېر خوښ شوم او بايد ووايم هغه ورځ چې ستا له مينې ډک ليک ماته راورسېد له هغه وروسته زما د پلار ناڅاپي مړينې موږ ټول غمجن کړو او پلار مې په يوه ټرافيکي پېښه کې له فاني نړۍ سترګې پټې کړې او د ځنګندن په وخت يې ماته نصيحت وکړ چې (     ) ملګری دې تل له ځان سره ولره دا څکه چې د پلار مې ستا اخلاق ډېر خوښېدل دغه راز دا وصيت يې هم راته کړی وو چې زما ساعت (     ) د نښې په توګه ورکړئ.

ګران ملګريه ما څکه ساعت د ليک دروړونکي په لاس له دې ويرې له کبله درونه لېږه چې د لارې په اوږدو کې به ترې ورک شي او په امانت کې خيانت رامنځته نشي او ستا امانت ما له ځان سره ساتلی نو ردې وخت نه نيسم په لوی او ښوونکي خدای دې سپارم.

د نړدې ليدو په هيله!

## د یو ملګري د مبارکۍ لیک

بسم الله الرحمن الرحیم

سلامونه او نیکې هیلې له خپل لوري ګران ملګري او عزتمند استاد( ) ته په نیک ساعت کې وړاندې کوم. له درناوي وړاندې کولو وروسته تاسو ته خبر درکوم چې یوه نیمه میاشت کیږي ستاسو په هکله خبر نه لرم هیله ده زما د لیک تر وروسته خپل احوال ماته راواستوئ.

ګران ملګریه څو ورځې وړاندې په کابل ښار کې بشارت خپرندویه ټولنې ته ورغلی وم او هلته مې ستا لیکلي کتابونه ولیدل باور وکړه چې له خوشالۍ نه په جامو کې نه ځایدم. پاڼې پاڼې مې واړولې، ډېر ښکلي لیکل شوي وو.

تاته د دې کتابونو د چاپ مبارکي وایم قلم دې تاند اوسه نور دې ارزښتناک وخت نه نیسم په ژوند کې درته لا بریالیتوبونه غواړم.

په درنښت

ستا ملګری (      )

## پلار ته د زوی لیک

بسم الله الرحمن الرحیم

سلامونه او نیکې هیلې د سمیع الله له خوا خپل پلار ته په نیک ساعت کې وړاندې کوم خدای دې وکړي چې روغ رمټ وا اوسئ.

ګرانه پلاره که زما د لیدو لېواله یاست نو تاسو ته ډاډ درکوم چې زه روغ رمټ او خپل کارونه په سمه توګه ترسره کوم. پلار جانه دا چې مور مې له شاهد الله جان وړور سره د حج د فریضې ادا کولو لپاره بیت الله شریف تللې په اورېدو سره یې ډېر خوښ شوم تېره ورځ مې ورسره اړیکه ټینګه کړې وه دواړه روغ او جوړ وو پر تاسو یې هم سلامونه ویل.

پلار جانه په زړه کې مې یوه هیله ده چې بیت الله شریف ته ستا او مورجانې مې ملګرتیا وکړم، پلار جانه ما اوس په لوګر ولایت کې د اوسپنې د ذوب فابریکه جوړه کړې او له پینځه ویشت تنو ملګرو سره په کې په ګډه کار کوم اوس مهمال مو فابریکې د شپاړس د موټر ماشینونه تولید کړي اوباید ووایم چې ټولې بریاووې مې ستاسو له برکته دي او کار مې ډېر ښه پرمخ روان دی نور ستاسو وخت نه نیسم په څښتن تعالی مو سپارم. په درناوي

ستاسو زوی سمیع الله

**ماما ته د خوريي ليک**

**بسم الله الرحمن الرحيم**

سلامونه او نیکي د ( ) له طرفه خپل ګران ماما ( الحاج دوکتور نظام الدین فطرت ) ته په نیک ساعت کې وړاندې کوم خدای دې وکړي چې روغ جوړ او د روغتیا په جامو پټ اوسې.

ماما جانه که زما په هکله د احوال لېوال یاست نو زه د دې لیک تر لیکلو پورې روغ جوړ یم او له وخت سره سم خپلو کارونو ته دوام ورکوم . ګرانه ماما هغه ډالۍ مو چې پتلون، دوه ټوکه کتابونه، یخنقاق او کتابچې وې ماته راورسېده او ډېره مننه درڅخه کوم.

مهربانه ماما ستاسو نصیحتونه له ماسره د پوهې په ډګر پوره مرسته کړې زه د غوره مقالي لیکلو له کبله په زده کړو کې اول نمره شوم او په ښوونځي کې هم استادانو ډېر وهڅولم ګرانه ماما وروسته له دې چې له ښوونځي فارغ شوم نو په یوه اسلامي موسسه کې مې دنده واخیستله ترڅو وکولای شم د خپلو زده کړو یوه اندازه لګښتونه پوره کړ او له بل لوري خپلې کورنۍ سره مرسته وکړم ځکه یوازې د پلار تنخوا مې د کورنۍ لپاره بسنه نه کوي، په پای کې مو نور وخت نه نیسم په ښوونکي څښتن تعالی مو سپارم.

په درناوي **دکتاب پاي - ۱۳۹۶ یوسفی مارکیت**

## تاسي کولی لاندي کتابونه د ورکړ شوی لینکونو څخه ښکته ( ډاونلوډ ) کړی

| د ښکته کولو تړونی | کتابونو نوملړ | شمیره |
|---|---|---|
| https://bawar.net/download/index/1170 | غیر مقلدینو اعتراضونه د هغوي جوابونه د احنافو دلایلو سره | 1 |
| https://bawar.net/download/index/1371 | مد لل لمونځ ( مولانا فیض احمد ملتانی) | 2 |
| https://bawar.net/download/index/1567 | دخالد بن ولید رضي الله عنه جهادي کارنامي | 3 |
| https://bawar.net/download/index/1592 | نبوي او سپیڅلي ویناوې | 4 |
| https://bawar.net/download/index/1652 | احقاق الحق څلور ټوک | 5 |
| https://bawar.net/download/index/1677 | زبدة التحقیق في الجهاد وتقلید | 6 |
| https://bawar.net/download/index/1685 | داسلام ستر اتل امام اعظم ابوحنیفه (رح) | 7 |
| https://bawar.net/download/index/1847 | تفسیر معارف القران لس ټوکه | 8 |
| https://bawar.net/download/index/1587 | لس مشهوري ناروغي | 9 |
| https://bawar.net/download/index/1904 | د افغانستان تاریخ له راشده خلافته تر اسلامی امارته | 10 |
| https://bawar.net/download/index/1916 | د مذهب په جامه کي د استعمار مزدوران | 11 |
| https://bawar.net/download/index/1922 | علم النحو پښتو | 12 |
| https://bawar.net/download/index/1978 | دغیر مقلدینو دامام بخاري سره اختلاف | 13 |
| https://bawar.net/download/index/1979 | داسلامي معلوماتو ذخیره پښتو | 14 |
| https://bawar.net/download/index/1980 | دامام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه حیرت انگیز واقعات | 15 |
| https://bawar.net/download/index/2025 | صفوة التفاسیر پښتو | 16 |
| https://bawar.net/download/index/2034 | احسن التعبیر في المسئلة الجبر وتقدیر | 17 |
| https://bawar.net/download/index/2035 | د همجنس بازي بربادی او دهغه علاج | 18 |
| https://bawar.net/download/index/2036 | تحقیقات حماسي | 19 |
| https://bawar.net/download/index/2037 | جوامع الکلم څلویښت احادیث مفتي محمد شفیع | 20 |
| https://bawar.net/download/index/2066 | المهند المفند عقاید اهل سنت والجماعت علماء دیوبند | 21 |
| https://bawar.net/download/index/2067 | انسان او شیطان(ناول) | 22 |
| https://bawar.net/download/index/2068 | اتلس ناولي قاتلین جنایي (ناول ) | 23 |
| https://bawar.net/download/index/2073 | تشریحات نابغه | 24 |
| https://bawar.net/download/index/2077 | جنتي ښځه | 25 |
| https://bawar.net/download/index/2078 | د جنت اغزنه لار | 26 |
| https://bawar.net/download/index/2084 | دپیغمبر لمونځ احنافو ته ډالۍ | 27 |
| https://bawar.net/download/index/2085 | تجلیات فردیه پښتو | 28 |
| https://bawar.net/download/index/2086 | بدر الفتو | 29 |
| https://bawar.net/download/index/2087 | دقرباني مسایل احکام ، فضایل،او مسائل مدلل | 30 |
| https://bawar.net/download/index/2088 | دګونټنامو ماتي زولنی | 31 |
| https://bawar.net/download/index/2089 | فن الخطابه (دوینا فن) | 32 |
| https://bawar.net/download/index/2090 | نشر الطیب في ذکر النبي الحبیب | 33 |
| https://bawar.net/download/index/2091 | اصول حدیث (شهید شیخ الاسلام مولانا غلام حضرت الحنفی ) | 34 |
| https://bawar.net/download/index/2092 | تنبه الغافلین پښتو | 35 |
| https://bawar.net/download/index/2093 | وا مدني یاره نعتیه غورچاڼ | 36 |
| https://bawar.net/download/index/2095 | تفسیر ایوبی حنفي | 37 |
| https://bawar.net/download/index/2096 | په یو کلیمي سره د طلاقو واقع کیدل | 38 |
| https://bawar.net/download/index/2097 | ارشاد الطالبین دزادالطالبین شرح پښتو | 39 |
| https://bawar.net/download/index/2101 | البصایر پښتو | 40 |
| https://bawar.net/download/index/2103 | ۳۰۰ ذهني پوښتني او ځوابونه | 41 |
| https://bawar.net/download/index/2104 | جامع الوظایف | 42 |
| https://bawar.net/download/index/2106 | داحنافو دلایل | 43 |
| https://bawar.net/download/index/2107 | د کلیساه د پردو ترشاه پټ لاسونه | 44 |
| https://bawar.net/download/index/2108 | د دعوت فنون | 45 |
| https://bawar.net/download/index/2117 | د واده لومړی لس شپې | 46 |
| https://bawar.net/download/index/2118 | زادة الطالبین پښتو ترجمه | 47 |
| https://bawar.net/download/index/2119 | اصول التکفیر | 48 |
| https://bawar.net/download/index/2120 | د ماشومانو ښکلا | 49 |
| https://bawar.net/download/index/2122 | د مبایل فون شرعي احکام | 50 |
| https://bawar.net/download/index/2128 | د انجمن تقریرونه | 51 |

که د کوم کتاب په ډاونلوډ کولو کې ستونزه لري مهرباني وکړي زمونږ سره آړیکه ټینګه کړی.


https://www.facebook.com/Ezatullah.sultanzai
WhatsApp: 0093706912702
https://T.me/Ezatullah_sultanzai

